نبوي مرغلري

رسول الله (ص) فرمايلي دي:
ژباړه: کوم شخص چې پر لږ رزق له الله "ج" راضي سو، (قناعت وکړي) نو الله "ج" د ده څخه پر لږ عمل راضي کېږي.
«مشکوة المصابیح»

# طلوع افغان

غوره وینا وي
عبدالهادي "همت":
هغه خوند چې د علم څخه تر لاسه کېږي، سپېڅلی او خالص وي.

د امتیاز څښتن:
د کندهار اطلاعات او فرهنګ ریاست

مؤسس: مولوي صالح محمد "هوتک"

په اوونۍ کې دوه واره چاپېږي

د تأسيس کال: ۱۳۰۰ لمريز، چهارشنبه ۲۲/رجب المرجب/۱۴۴۶ هـ ق، ۳/سلواغه/ ۱۴۰۳ل کال – ګڼه (۶۴) Wednesday-22-January-2025 Issue: 64


## د مطالبو سرلیکونه


- افغانستان او سعودي عربستان: د تاریخي اړیکو بیاکتنه او د همکارۍ نوی فرصت (محمد قاسم "عزام")
- پر اسلامي ټولنه؛ د هندي او ترکي سریالونو اغېز (حسان مجاهد)
- د ذلت ګوله؟! (عبدالرقيب رقيب)
- د شیطان لښکر
- حنیفه زاهد (صابر جان "محصل")


د طلوع افغان خبري (سرلیکنه)

## افغانان دې بهر کې یوازې په تخنیکي برخو کې وروزل سي

کلونه وړاندې یو شمېر افغان ځوانان د هغه وخت شوروي اتحاد جمهوریتونو ته د لوړو زده کړو له پاره واستول سول، هلته یې په مختلفو برخو کې زده کړې وکړې، کله چې دغه افغان ځوانان تر زده کړو وروسته هېواد ته راستانه سول، نو سمدلاسه زموږ په هېواد کې د کمونیستي افکارو د ترویج هڅې شروع سوې، د همدې مفکورې خاوندان پیدا سول، ګوندونه یې جوړ کړل او په افغاني ټولنه کې یې د کمونیستي او سوسیالیستي افکارو د عملي کولو ډنډورې ړغولې.

د دې خلکو نفوذ کرار – کرار زیاتېدی، بالاخره دوی وتوانېدل، چې د افغانستان د وخت نظام نسکور کړي او یوه کمونیستي اداره رامنځته کړي، د دې ادارې سرلاري او غړي هماغه افغان ځوانان ول، چې یو څو کلونه وړاندې شوروي اتحاد ته د لوړو زده کړو له پاره تللي ول، دوی هلته کمونیستي فلسفه لوستې وه او د غه الحادي نظریه ورته پېچکاري سوې وه.

شوروي اتحاد د همدې روزل سوو افغان ځوانانو څخه په استفاده، پر افغانستان یرغل وکړ، زموږ ښایسته هېواد یې ټوکر – ټوکر کړ، شاوخوا یو نیم میلیون افغانان یې شهیدان او زیات و کم یو میلیون یې معیوب کړل او تر ۵ نیم میلیونه زیات افغانان یې له خپل هېواده وتلو ته اړ کړل.

په بهرنیو هېوادونو کې د افغانانو زده کړه ولې دونه په لوړه بیه راته تمامه سوه؟ دا ځکه چې هلته په بهرنیو هېوادونو کې دوی په فکري، اقتصادي، سیاسي او ټولنیزو برخو کې روزل کېدل، چې طبیعي خبره ده، د غرب او شرق فرهنګ او افکار یې هضم او ځني متأثر کېدل، همدا علت و، چې بیا به زموږ په هېواد کې د غرب او شرق د فرهنګ او افکارو مدافعین او د خپلو افکارو او فرهنګ دښمنان سول.

که څیري د محمد ظاهر شاه په واکمنۍ کې افغان ځوانان شوروي اتحاد ته د سیاسي، ټولنیزو، اقتصادي زده کړو پر ځای، یوازې د حرفه یي او تخنیکي زده کړو له پاره استول سوي وای، نو ښایي افغانستان به د کمونیزم له خطره خلاص او د افغاني کمونیستانو پر ځای به، مسلکي، تخنیکي او په کار پوه افغانان روزل سوي وای.

له نېکه مرغه په دې وروستیو کې د افغانستان اسلامي امارت مسئولینو د روسیې د سفارت له چارواکو سره لیده – کاته کړي او له هغوی یې غوښتي، چې افغان ځوانان دې په تخنیکي او حرفه یي برخو کې وروزي.

اسلامي امارت دې دا چاره یوازې له روسیې سره نه، بلکې له ټولو بهرنیو هېوادونو سره وکړي، په نورو هېوادونو کې دې افغان ځوانان یوازې په ټکنالوژیکي، صنعتي، سوداګري، حرفه یي، انجینري، طبي او دې ته ورته نورو مسلکي برخو کې وروزل سي.

په سیاسي، اقتصادي، دیني، ټولنیز، کلتوري، ادبي او نورو برخو کې د زده کړو له پاره افغانستان تر ټولو بهترین ځای دئ.

هغسي هم که څیري یو ځوان په هند کې سیاسي علوم ولولي، د هند په سیاسي سیستم به پوه سي، نه د افغانستان؛ که په چین کې اقتصاد ولولي، نو په کمونیستي افکارو به پوه سي، د افغانستان په عملي میدان کې دغه کس هیڅ رول نه سي ادا کولای، ځکه زموږ د هېواد سیاسي، اقتصادي، ټولنیز، کلتوري او ادبي برخې له نورو سره توپیر لري.

اداره

## د افغانستان او چین د ډیپلوماتیکو اړیکو اویا یمې کالیزې په مناسبت غونډه وسوه!

د افغانستان اسلامي امارت د بهرنیو چارو وزارت له لوري د دوشنبې په ورځ د دې وزارت په ستوري ماڼۍ کې د کابل او بیجینګ ترمنځ، د ډیپلوماتیکو اړیکو ۷۰مه کالیزه د دواړو هېوادونو د ډیپلوماټانو او مسئولینو په شتون کې ولمانځل سوه.

د بهرنیو چارو وزارت سیاسي معین شېر محمد عباس ستانکزي په یاده لمانځغونډه کې د وینا پرمهال وویل، چین د پخواني شوروي اتحاد او امریکایي اشغال په وړاندې د افغانانو د مبارزې او جهاد کلک سیاسي ملاتړ کړی او اوسمهال هم له اسلامي امارت سره ښې اړیکې لري.

د ستانکزي په خبره، چین هغه سیمه ییز هېواد دی، چې تر اوسه پورې یې له افغانستان سره هیڅ ډول سرحدي شخړه نه ده رامنځته سوې.

هغه همدارنګه د چین غوښتنه وکړه، چې په نړۍوالو درېځونو کې د افغانستان اسلامي

۴مخ

## د میلیونونو افغانیو په لګښت پروژه عملي کېږي

د کندهار ولایت په ارغنداب ولسوالۍ کې استنادي دېوال، کانال او کاریز جوړېږي.

د کندهار د اوبو او انرژۍ رئیس ملا سید محمد شرافت باختر خبري آژانس ته ویلي، د کندهار ولایت د ارغنداب ولسوالۍ د بابرو په کلي کې د یو استنادي دېوال، کانال او کاریز د جوړېدو چاري رواني دي، چې د راتلونکو درو میاشتو په موده کې به بشپړې سي.

۴مخ

## په تخته پل ولسوالۍ کې د اوبو ذخیره کولو حوضونه جوړېږي

د کرهنې، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست ویاند محمد حنیف حقمل باختر خبري آژانس ته ویلي، د کندهار ولایت په تخته پل ولسوالۍ کې د څادرګه او تنګي سیمو له پاره د اوبو ذخیره کولو د دوو حوضونو جوړولو چاري پیل سوي دي.

د یادو حوضونو اوږدوالی ۴۰ متره، بردوالی ۳۰ متره او لوړوالی یې ۱,۵ متره دی، چې رغېزي چاري به یې په راتلونکې یوه

۴مخ

## د مراجعینو د اسانتیا له پاره بانکي څانګه پرانیستل سوه

د کندهار د احصائیې او معلوماتو ریاست اړوندو مراجعینو ته د اسانتیاوو په خاطر د میوند بانک څانګه پرانیستل سوه.

د کندهار د احصائیې او معلوماتو رئیس مولوي نور احمد سعید ویلي، د دې څانګې په پرانیستل کېدو سره به هېوادوالو ته په خدمتونو کې لازمي اسانتیاوې رامنځته سي.

۴مخ

## د درو کورنیو ترمنځ؛ اوولس کلنه دښمني پای ته ورسېده!

په کندهار کې د مسئولینو په هڅو، د درو کورنیو ترمنځ، اوولس کلنه دښمني پای ته ورسېده.

د دې اوولس کلنې دښمنۍ روغه – جوړه د نهمې ناحیې اړوند، په مظهري مسجد جامع کې وسوه، چې د روغې – جوړې په همدې مراسمو کې د کندهار والي ترڅنګ، لسونو نورو مسئولینو او عامو کسانو ګډون کړی و.

په مراسمو کې د بخښنې او روغې – جوړې پر فضلیتونو هر اړخیزې ویناوې وسوې، ویناوالو زیاته کړه، د خلکو ترمنځ، دوستي او سوله، نه یوازې د ټولنیز سمون سبب ګرځي، بلکې د الله تعالی د رحمت دروازې پرانیزي.

کندهار والي حاجي ملا شېرین اخند هم په خپله وینا کې د ټولو خلکو ترمنځ پر یووالي او اتفاق ټینګار وکړ او له ټولو یې غوښتنه وکړه، چې باید یو او بل ته د

۴مخ

## زرونو څارویو ته د چنجیو ضد واکسین ترسره سو

د کندهار ولایت په نېش ولسوالۍ کې زرونه څارویو ته د چنجیو ضد واکسین تر سره سو.

د کرهنې، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست ویاند محمد حنیف حقمل ویلي، په نېش ولسوالۍ کې ۱ زر او ۵۰۰ څارویو ته د چنجي ناروغیو واکسین تطبیق پای ته ورسېدی.

د یاد واکسین د تطبیق موخه

۴مخ

## یو هاموي ټانک پیدا او مسئولینو ته وسپارل سو

په کندهار ولایت کې د ۲۰۵ البدر قول اردو مطبوعاتي مسئولینو ویلي، ځواکونو یې په زابل ولایت کې د ځانګړي راپور پر اساس، په یو کور کې هاموي ټانک پیدا او د تخنیک آمریت مسئولینو ته سپارل سوی دئ.

دوی زیاتوي، یاد ټانک د جمهوریت د پرځېدو پر مهال، یو ولسي کس په کور کې ساتلی و.

## بېلابېل موضوعات

# افغانستان او سعودي عربستان: د تاریخي اړیکو بیاکتنه او د همکارۍ نوې فرصت

محمد قاسم "عزام"

دافغانستان او سعودي عربستان اړیکي د ژورو تاریخي، مذهبي، سیاسي او اقتصادي بنسټونو پر اساس ولاړې دي، چې په تېرو څو لسیزو کې یې د دواړو هیوادونو په سیمه‌ییزه او نړۍ‌واله کچه ځانګړې اهمیت درلودی. سعودي عربستان داسلامي نړۍ د رهبرۍ یو مهم مقام لري، په داسي حال کي چي افغانستان د جغرافیوي موقعیت، تاریخي ارزښت او اسلامي هویت له مخي په سیمه کي د پام وړ رول لوبولی دی. له دې امله د دواړو هیوادونو ترمنځ، داړیکو ښه کېدل نه یوازي د دواړو هیوادونو له پاره ګټور دي، بلکي داسلامي نړۍ په وحدت او د سیمي په ثبات کي هم مهم رول لوبولای سي.

د سعودي عربستان او افغانستان اړیکي له څو لسیزو راهیسي د مهمو تاریخي پېښو پر بنسټ رامنځته سوي دي. د شوروي یرغل پر مهال، سعودي عربستان د افغان مجاهدینو د ملاتړ په لومړۍ کرښه کي و. دې هیواد د مالي او معنوي مرستو له لاري د شوروي ځواکونو پر ضد، د افغانانو مقاومت پیاوړی کړ. په دې دوره کي سعودي عربستان د افغان ملت له پاره یو مهم ملاتړی هیواد و او دې اړیکو د دواړو هیوادونو ترمنځ، د یووالي بنسټ کېښښاوه. داسلامي امارت د لومړي حکومت پر مهال (۱۹۹۶–۲۰۰۱)، سعودي عربستان د هغو درو هیوادونو څخه و چي د طالبانو حکومت یې په رسمیت وپېژانده. دا پېښه په دې معنی‌وه چي سعودي عربستان دافغانستان له سیاسي جوړښتونو سره داړیکو په ساتلو کي ژمنتیا درلوده. سره له دې چي تر ۲۰۰۱م کال وروسته، د نړۍ‌والو سیاسي بدلونونو له امله اړیکي څه وخت له خنډونو سره مخ سوې، خو داسلامي امارت تر بیا واکمنېدو وروسته، په ۲۰۲۱م کال کي سعودي یووار بیا دافغانستان په سیاسي او اقتصادي پرمختګ کي د مثبت رول ادا کولو ته چمتووالی ښکاره کړ. د اسلامي امارت تر واکمنېدو وروسته، دافغانستان او سعودي عربستان ترمنځ اړیکو بیا نوی لوری خپل کړ. د امارت لوړپوړو چارواکو، په ځانګړې توګه؛ د بهرنیو چارو وزیر مولوي امیر خان متقي او د کورنیو چارو وزیر خلیفه سراج الدین حقاني په وارو–وارو د سعودي عربستان له لوړپوړو چارواکو سره لیدني کړي دي. په دې ملاقاتونو کي د دوه اړخیزو اړیکو د پیاوړتیا، داقتصادي همکاریو د زیاتېدو او د بشري مرستو داغېزمنتیا په اړه خبري سوي دي. سعودي عربستان د اسلامي همکاریو سازمان (OIC) د مخکښ غړي په توګه په دې غونډو کي له افغانستان سره د نړۍ‌والو اړیکو ښه کولو له پاره هڅي کړي دي.

**دافغانستان او سعودي عربستان اړیکو د ښه کېدو له پاره ګڼ دلایل شتون لري چي د دواړو هیوادونو داوږدمهاله ګټو ګټو ضمانت کوي:**

**۱–مذهبي مشترکات:** افغانستان او سعودي عربستان داسلامي هویت له مخي ژورې اړیکي لري. سعودي داسلامي نړۍ د رهبر په توګه د افغانستان داسلامي اصولو ملاتړ کول، د خپل دیني رسالت برخه ګڼي.

**۲–اقتصادي همکاري:** سعودي عربستان دافغانستان له پاره د پانګوني او اقتصادي ودې یو مهم شریک کېدای سي. دافغانستان د کانونو، زېربناوو او کرهنیزو سرچینو په پراختیا کي د سعودي پانګونه دواړو هیوادونو ته ګټوره ده.

**۳–دبشري مرستو دوام:** سعودي عربستان په تېرو کلونو کي دافغان ولس له پاره د بشري مرستو په برخه کي مهم رول لوبولی دی. د خوراکي موادو، درملو او نورو حیاتي اړتیاوو په برخه کي د سعودي مرستي د اړیکو د دوام له پاره یوه غوره نمونه ده.

**۴–سیاسي ګټي:** سعودي عربستان هڅه کوي چي د سیمي د سیاسي ثبات د ټینګښت له پاره خپل رول ولوبوي. له همدې امله، له افغانستان سره ښې اړیکي د سعودي له پاره د یوې ستراتیژۍ برخه ده، ترڅو په سیمه کي د بې ثباتۍ د مخنیوي له پاره مثبت اغېز وکړي.

**۵–دنړۍ‌والو اړیکو ښه کول:** سعودي کولای سي، دافغانستان د نړۍ‌والي مشروعیت د ترلاسه کولو له پاره مهم رول ولوبوي. داسلامي همکاریو سازمان له لاري د سعودي ملاتړ د نړۍ‌والو اړیکو د ښه کولو له پاره حیاتي دی. دافغانستان او سعودي عربستان راتلونکي اړیکي د څو مهمو اړخونو پراساس لا زیاتي پراخېدای سي. سعودي کولای سي، د افغانستان د بیارغوني په برخه کي داوږدمهاله پلانونو ملاتړ وکړي. د سعودي له خوا د لوژستیکي مرستو، بشري مرستو او اقتصادي پانګوني زیاتول به، دافغان حکومت او ولس ترمنځ داړیکو لا پیاوړتیا تضمین کړي. سربېره پر دې سعودي عربستان د نړۍ‌والو اړیکو په پراختیا کي افغانستان ته د منځګړي رول لوبولای سي، په ځانګړې ډول؛ د نړۍ‌والي ټولني له هغو هیوادونو سره چي لا هم دافغانستان په اړه مشخص دریځ نه لري. دافغانستان او سعودي عربستان اړیکي د مذهبي، تاریخي، اقتصادي او سیاسي اړخونو له مخي ځانګړې اهمیت لري. داسلامي امارت د مشرانو وروستي ملاقاتونه او د سعودي ژمنتیاوي د دې اړیکو د راتلونکي له پاره هیله بخښونکي دي. د دواړو هیوادونو د همکارۍ پراختیا نه یوازي داقتصادي ودې او سیاسي ثبات لامل ګرځي، بلکي د سیمي له پاره د سولې او پرمختګ یوه نوې پاڼه پرانیزي. له همدې امله اړینه ده چي دواړه هیوادونه خپلې اړیکي د متقابل درناوي، ګډو ګټو او همکارۍ پر بنسټ لا نوري پیاوړي کړي.

---

# پر اسلامي ټولنه؛ د هندي او ترکي سریالونو منفي اغېز!

حسان مجاهد

پنځمه او وروستی برخه

**۹–د وخت ضایع کېدل:**

د بهرنیو سریالونو د یو لړ زیانونو څخه دا هم دی چي د کتونکو قیمتي وختونه ضایع کوي، د ځوانۍ هغه قیمتي شېبې چي دوی باید د آخرت له پاره څه توښه په کښې برابره کړي او هغه قیمتي عمرونه چي دوی باید په کښې د ځان، کورنۍ او ټولني د ګټي کارونه په کښې تر سره کړي، ټول د بې ارزښته سریالونو مخته ضایع کوي، که د ډېرو ځوانانو د عمرونو اندازه ولګول سي، څرګنده به سي چي د دې سریالونو یې د ژوند څومره قیمتي ساعتونه خوړلي دي!

موږ هره ورځ (۸۶۴۰۰) شېږ اتیا زره او څلور سوه ثانیې وخت لرو، چي نه سو کولای دومره وخت سبا ته وساتو، خو هر سهار او ماښام دا خالي وخت د موږ څخه د دې بېهوده فلمونو په کتلو ضایع کېږي.

د تازه احصائیو له مخي، خلک پر ټولنیزو شبکو لکه: فېسبوک، ټویټر، واټس اپ، انسټاګرام، یوټیوب او نورو باندي په اوسط ډول هره ورځ شپږ ساعته وخت تېروي، سربېره پر دې، دوی پر ټلویزیون کتلو دوه ساعته وخت تېروي، یعني هره ورځ ټولنیزي رسنۍ زموږ له خپل عمره اته ساعته غلا کوي، په دې اساس ویلای سو چي که د یو چا ټول عمر ۶۰ کاله وي او ده په شواروز کي ۸ ساعته په ټولنیزو رسنیو مصرف کړی وي، نو ده به له ټول عمره د رېیمه برخه یعني یوازي ۲۰ کاله په ټولنیزو رسنیو مصرف کړی وي او دا زموږ له پاره ډېره د خپګان او افسوس وړ خبره ده چي د خپل لنډ عمر د رېیمه برخه په ټیلیفون او ورته شیانو ضایع کوو.

۱۰–پر روغتیا باندي د هندي سریالونو منفي اغېز:

د دماغ ناروغي: یوه څېړنه چي د المان په پلازمېنه برلین کي د "ماکس پلانک انستیټیوټ" څېړونکو له خوا تر سره سوه، څرګندوي چي د دماغ یوه کوچنۍ برخه "ستریاتوم" (striatum) د هغو نارینه وو چي د فاحشو فلمونو په تماشه روږد دي، کوچنۍ ده، په پرتله د هغو نارینه وو چي دغه فلمونه نه ګوري او دا برخه په دماغ کي مهمه ونډه لري، چي کوچنیوالی یې انسان غبي کوي او پراخوالی یې انسان ځیرکوي. همدارنګه څېړني ښوولې چي د لڅو فلمونو کتل، د پریفرونټال کارټکس (Prefrontal Cortex) د دماغ یوې پېچلې او پرمختللي برخي چي د انسان د فکري او اجتماعي وړتیاوو له پاره بنسټیزه ده او د مختلفو مهمو فعالیتونو له پاره مسئوله ده، د خرابېدو لامل ګرځي.

**د دماغ د یوې برخي بندېدل:**

د هالېنډ د ګرونینجن پوهنتون د طبي مرکز د اعصابو جراح "جیرت هولستیج" یوه علمي څېړنه کړې او په پایله کي دې نتیجې ته رسېدلی دی چي لڅ فلمونه لیدل کولای سي هغه دماغي برخه بنده کړي، چي د نورو شیانو په لیدلو وینه په زیاته اندازه دغه دماغي برخي ته جریان مومي، خو بالعکس د لڅو فلمونو د لیدلو پر مهال، وینه پر ځای د دې چي دغه دماغي برخي ته جریان وکړي، د جنسي تحریک پر لور جریان کوي.

**د حافظې کمزوري:**

د المان د "دویسبورګ ایسن" پوهنتون څېړونکو په ۲۰۱۲م کال کي یوه څېړنه تر سره کړه، ترڅو د لڅو فلمونو د لیدني پر لنډمهاله حافظه اغېزې وڅېړي، څېړني وښوول چي لڅ فلمونه لیدل کولای سي، حافظه کمزورې کړي. څېړونکو وویل چي د لڅو فلمونو د لیدو له امله رامنځته سوی جنسي تحریک د لنډمهاله حافظې سره تداخل کوي، نو ځکه د هغو کسانو په پرتله، چي لڅ فلمونه نه ګوري، د هغو کسانو حافظې کمزوري وي، چي لڅ فلمونه ګوري.

**ژور خپګان:**

درواني ناروغیو کارپوه "کیفن سکینر" له خوا په ۲۰۱۱م کال کي یوه څېړنه تر سره سوه، ترڅو د لڅو فلمونو د لیدلو او د خپګان ترمنځ، اړیکه وڅېړي، د دې څېړني څرګنده کړه، هغه کسان چي لڅ فلمونه ګوري، د خپګان احساسات یې ډېر زیات وي.

کله چي د ۴۵۰ کسانو څخه وپوښتل سول، چي آیا د لڅو فلمونو او ژور خپګان ترمنځ اړیکه سته؟

له اکثریت نارینه ګډونوالو چي په اوونۍ کي یې له درو تر پنځو ځله لڅ فلمونه کتل، د دوی د خپګان کچه ۱۸ وه او هغه ډله چي هره ورځ یې لڅ فلمونه کتل، د خپګان کچه یې تر ۲۱ پوري لوړه سوې وه چي دا د شدید خپګان کچه ده او د عامو خلکو له خپګان سره ډېر توپیر لري.

**د هندي سریالونو د کتلو حکم:**

زموږ د شریعت دا یو مهم اصل دی چي "اسباب الحرام حرام" یعني د حرامو شیانو اسباب حرام دي او په دې کي هیڅ شک نسته چي هندي سریالونه او فاحش فلمونه د حرامو اسباب دي، لکه: په عقیده کي شک، په اخلاقو، عاداتو او کلتور کي د کفارو تقلید، پردیو ښځو ته کتل، خپلمنځي اختلافات او بدبینی، فاحشي کړني، ناروا مینه او مجازي مینتوب، د نشه یي توکو روږدتوب، جرمونه او فساد، روغتیایي زیانونه، مالي اصراف، بې ارزښته کارونه، د وخت ضایع کېدل او داسي نور. کله چي دا کارونه تر لمر روښانه حرام دي، نو په دې اساس ویلای سو چي د دې اسباب (هندي سریالونه او فاحش فلمونه) هم حرام دي.

**مسلمانو کورنیو او واکمنانو ته پیغام:**

اې د کورنیو مسئولینو! تاسو د خپلو اولادونو په اړه مسئولیت لرئ او د هري خطا پوښتنه به یې له تاسو کېږي، نو بناءً خپلو اولادونو ته د فساد وسائل مه برابروئ، اصلاح یې کړئ، څارنه یې وکړئ او د فتنو له هر ډول اسبابو یې وژغورئ!

اې د وخت واکمنانو! په دې پوه سئ چي ځوان نسل ستاسو په غاړه کي هغه امانت دی چي په هکله به یې له تاسو د قیامت په ورځ پوښتنه کېږي، تاسو د هري کوچنۍ او لویې پېښي په اړه مسئول یاست، نو په کار ده چي تاسو د خپل رعیت په وړاندي د فتنو دروازې وتړئ او د نن زمانې طوفاني فساد په وړاندي جدي اقدام وکړئ، د بهرنیو سریالونو او وارداتي فلمونو مخه ونیسئ، رسنۍ محدودي کړئ، د فاحشو فلمونو په بدل کي ځوان نسل ته د اسلامي فلمونو، تمثیلونو او خپرونو زمینه برابره کړئ!

پای

---

# د ذلت ګوله!!

عبدالرقیب "رقیب"

اوله برخه

پر ټولنه مو یو فکر حاکم سوی چي د مدرسې د شاګردا او د مسجد د امام نفقه د ذلت ګوله ګڼي، دغه فکر فیصله کوي چي ملاامام د کلیوال زکات ته ناست او د مدرسې شاګرد بیا کور په کور ټوک ټولوي، دوی د امام او شاګرد دغه کړنه ذلت ګڼي او ځیني خو ملاامام او د مدرسې شاګرد ته د ذلیل او سپک انسان لقب هم ورکوي.

دغه فکر وایي، ملاامام چي د خلکو لاس ته ناست وي، هیڅکله کلیوالو ته حق نه سي ویلای او د هغوی د خوښي خلاف (دیني خبره) به و نه کړای سي او وایي ملاامام هر وخت د کلیوالو په خوښه دین تعبیروي، ځکه چي ګوله یې د کلیوال له جېبه ده «هر که نان دهد فرمان دهد».

دغه فکر دا هم وایي، د مدرسې شاګرد چي له وړکتوبه په سوال کولو عادت سي، هیڅکله به په ځوانۍ کي له سواله لاس و نه نیسي، سوال به یې د رزق وسیله وي او د رزق ورکوونکي په وړاندي به هیڅکله د حق پلوي و نه کړي.

د دې فکر اکثریت پلویان هغوی دي چي رزق یې د حکومت له ادرسه وي، د تعلیم په دوران کي د حکومت له خزانې مصارف پر کېږي، چي فارغ سي، بیا هم په حکومت کي وظیفه اخلي او د حکومت له خزانې ګوله ورته مقرره وي، که شخصي کاروبار هم ولري، له حکومت سره ملازمینو ته له هغه ذلت نه برائت ورکوي چي ملاامام او د مدرسې شاګرد یې ور باندي نازولي وي، دوی وایي حکومت ولسونو ته د تعلیمي چاپېریال او شرایط برابرولو مسئولیت لري او زده کوونکو ته چي څه ورکوي، هغه یې مکلفیت دی، دوی وایي، حکومت د باسواده قشر له پاره د دندي پیدا کولو وجیبه هم لري او د دندي په بدل کي معاش ورکول، د حکومت مسئولیت دی، په دې اساس د حکومت له ادرسه د شاګردا او مامور ګوله د سوال ګوله نه ده او د ذلت سبب هم نه ده، بلکي دا یې خپل حق دی، باید په هسکو سترګو یې ترلاسه کړي.

خو که له دوی وپوښتل سي چي ستاسو منطق پر تاسو را غبرګ نه سو!؟ څوک چي له وړکتوبه د حکومت تخرګ ته ناست وي، آیا په ځوانۍ کي به د حکومت له ادرسه مخ واړوي!؟ د کوم ځوان ګوله چي د حکومتونو له جېبه وي، آیا هغوی به د حکومتونو په وړاندي د حق ویلو جرئت ولري، آیا د حکومت هر ناروا امر ته به لبیک و نه وایي (پر ته له هغه صورت ته چي ګوله ور باندي بنده سي!؟) همدا فیصله ستاسو فیصله وه چي ویل مو «هر که نان دهد، فرمان دهد» او که ستاسو په باور د حکومت امر په هر صورت واجب دی، که روا وي او که ناروا او ستاسو په باور حکومت حق‌ویونکي ته هم اړتیا نه لري، یوازي کلیوال ته باید حق وویل سي.

اپوزیسیون مو هم د دې تسلسل څخه وتلی نه دی؟

که له دوی وپوښتل سي چي ستاسو په باور، حکومت ولي مکلف دی چي مامورینو او د ماموریت له پاره روزل کېدونکو ته ګوله ورکړي؟ طبعًا جواب به دا وي چي مامورین د حکومت مراندي دي، له مامورینو پر ته حکومت نیمګړی وي او حکومت بیا د ټولني اړتیا ده، نو ځکه مامورین حق لري چي له حکومته معاش واخلي؛ د مامورینو معاش د حکومت مکلفیت او ترلاسه کول یې ذلت نه و، د دین زده کوونکي او رسوونکي له پاره ولي ذلت سو «یو بام دوې هوا وي»؟!

په دوی کي ځیني بیا دا هم وایي چي د دین له پاره ځانګړي قشر ته اړتیا نسته، د دین په اړه تخصص ته هیڅ اړتیا نسته، هر څوک د دین په مسائلو څه ناڅه پوهېږي، باید هر څوک خپل کار وکړي. د دغسي خلکو له پاره که د قرآنکریم دغه ارشاد هم له یاده و نه باسو، چي فرمایي:

ژباړه: «او دا څه ضروري نه وه چي مؤمنان ټول له مخي وتلي وای، خو داسي ولي و نه سوه چي د هغوی د نفوسو له هري برخي څخه یو څه کسان وتلي وای او د دیني پوهي تر تحصیل وروسته، بیر ته راستانه سوي او د خپلي سیمي او سېدونکي یې خبر کړي وای، ترڅو هغوی (له غیر اسلامي چال چلند څخه) ډډه کړي وای.» [سُورَةُ التَّوبَة: ۱۲۲]

بلکي که د دوی پر منطق ور سره ولاړ سو او ووایو چي که د دین پالللو او رسولو له پاره ځانګړي قشر ته اړتیا نه وي، نو د دنیوي چارو له پاره بیا څنګه تخصص ته اړتیا سوه. هر څوک د دنیا په چارو څه ناڅه پوهېږي، هر څوک باید خپل کار وکړي، ولي مو ځانګړي تخصصي مرکزونو ور ته منلي دي؟ آن یوازي په انجینري کي مو مختلف تخصصات ایجاد کړي، په طب کي بېلابېلي رشتې او د هري یوې له پاره ځانګړی تخصص مو ایجاد کړی دی، د دولت له خزانې مصارف ور باندي کېږي!؟ ښکاره خبره ده چي له تخصص پر ته هر مسلک نیمګړی وي، مګر دغه خلک د دین د کارونو نیمګړتیا ته اهمیت نه ور کوي، دغسي فکر او خلک باید په اسلامي ټولنه کي د اقتدا وړ و نه ګڼل سي.

نور بیا...

خوبنونه: شهید شیخ رحیم الله "حقاني"

# د شیطان لښکر

(۱۰۱) برخه

## د خوار جو نوې څېره (داعش)

الله جل جلاله د سورة المؤمنون په ۶۲ نمبر آیت کي فرمايي:

موږ پر يو نفس باندي د هغه د وس سره بوج اچوو.

يا لکه رسول الله صلی الله عليه وسلم له حالتونو سره سم دعوت ورکاوه، کله چي طائف څخه واپس راغی، نو د مطعم بن عدي په امان کي مکې ته ننوت، دې روايت ته ګورئ!

جبير بن مطعم رضي الله عنه فرمايي: نبي کريم صلی الله عليه وسلم د بدر د قيديانو په هکله وفرمايل: که مطعم بن عدي ژوندی وای او ماته يې د دې ناپاک (عقيدةً) بنديانو په اړه د خلاصون سفارش کړی وای، نو د هغه په خاطر به ما ټول پرې ايښي وای.

د عون المعبود مصنف ليکلي: نبي کريم صلی الله عليه وسلم دا خبره ځکه وفرمايله چي د مطعم يو احسان ورباندي و، هغه دا چي رسول الله صلی الله عليه وسلم چي کله له طائف څخه راستون سو، نو د مطعم په امان کي مکې ته داخل سو او هغه له نبي کريم صلی الله عليه وسلم څخه مشرکان ليري کړل، نو ځکه يې خوښه وګڼله چي که مطعم ژوندی وای، نو د هغه احسان بدله به مي داسي ورکړې وای، دا ياد مطعم د دې حديث د راوي جبير پلار دی.

ابوبکر صديق رضي الله عنه مکې ته د يو مشرک په امان کي داخل سوی دی:

ژباړه: کله چي مسلمانانو ته تکليف زيات سو، نو ابوبکر هم د هجرت په نيت د حبشې پر لور روان سو، کله چي برک الغماد ته نژدې سو، هلته يې د قاره قبيلې له مشر مالک بن الدغنه سره ليده – کاته وسول، هغه ترې پوښتنه وکړه: ابوبکر! چيري دي اراده ده؟ ابوبکر رضي الله عنه جواب ورکړ: زما قوم زه وباسلم، اوس مي دا اراده ده چي د الله جل جلاله په مځکه کي چکر ووهم او د خپل رب عبادت وکړم.

مالک بن الدغنه وويل: ستا په څېر انسان خو نه له خپل وطنه وځي او نه يې څوک باسي، ځکه چي ته د محتاجو خلکو له پاره ګټې، صله رحمي کوې، د اړمنو خلکو بوج په خپله غاړه اخلې، د مېلمه اکرام کوې او په پېښو کي د حقي خبري ملاتړ کوې، زه تا ته امان درکوم، ته واپس سه او په خپل ښار کي د خپل رب عبادت کوه!

له پورته دلايلو څخه دا خبره ډېره ښه څرګنده سوه، چي د يو کفري نظام په سيوري کي پاته کېدل او له هغه ځايه بل کفري نظام له منځه وړل، هيڅ کوم شرعي قباحت نه لري، يا د کفري نظام تر سيوري لاندي پاته سي، خو د دې نظام په کفر باندي خلک پوه کړئ، نو دا هم روا دی او همدا د رسول الله صلی الله عليه وسلم له سيرت څخه ثابتېږي، که اعتراض کوونکی پر مبلغ باندي همدا اعتراض کوي، نو نبي کريم صلی الله عليه وسلم چي په مکه کي ديارلس کاله تېر کړي دي، د هغه په اړه به څه ووايي؟

دا خو مهمه نه ده، چي هر وخت توره پورته کول لازمي دي، د چا چي په وس وو، هغوی توره راپورته کړې ده او د چا چي په وس نه ده پوره، نو هغوی د خلکو ذهن سازي کوي، يو وخت به هغوی هم توره را واخلي، خو دا اعتراض له يو مخي سم نه دی، چي ته دې نظام ته کفري نظام وايې، نو بيا له دې ځايه ولاړ سه!

دلته ژوند ولي تېروې!؟

دا جاهلانه او احمق رنګه اعتراض دی، ځکه چي کله زه په جنګ قادر نه يم نو لږ تر لږه په ژبې سره د دې نظام کفري کېدل، خو خلکو ته بيانولای سم، که دا سيمه زه پرېږدم، نو د دې نظام کفر به څوک په ډاګه کوي؟ نو دلته به معترض غلی سي.

راځو بلي مهمې خبري ته:

په کفري هيوادونو کي د قيام او هستوګني شرعي حکم:

دا په اصل کي د يو خارجي اعتراض جواب دی، اعتراض دادی: کوم مسلمانان چي له کفري هيوادونو څخه هجرت نه کوي، هغه فاسق دی.

نو د دې جواب دا دی:

په اوس وخت کي د مسلمانانو لوی شمېر په کفري هيوادونو کي آباد دي، يوازي په هندوستان کي د مسلمانانو شمېر د صحيحي احصائيې سره سم له درې سوه ميليونو څخه کم نه دی، چي دا په اوس وخت کي په يو هيواد کي د مسلمانانو لوی تعداد دی.

په چين کي: ۱۵۰ ميليونه

په متحده روس کي: ۲۰ ميليونه

په اروپا کي:۵، ۱۰ ميليونه (لس ميليونه او اته سوه زره)

او په امريکا کي اته ميليونه مسلمانان اوسېږي، همدا راز په افريقايي هيوادونو لکه: تنزيانيا، يوګانډا، کينيا او جنوبي افريقا او آسيايي هيوادونو لکه: سنګاپور، سريلانکا، نيپال او نورو هيوادونو کي مسلمانان په لوی شمېر سره آباد دي. نوربيا...

# حنيفه زاهد

صابر جان "محصل"

حنيفه زاهد د پښتو معاصري شاعرۍ يوه پېژندل سوې څېره ده. د هغې شعرونه عموماً ژور فلسفي، عرفاني، روحاني او حماسي مفاهيم لري. دا ډول شعرونه نه يوازي د ادبي ښکلا له پلوه مهم دي، بلکي د انسان فکر ته ژوروالی هم وربخښي.

د پښتو ژبې په ادبي نړۍ کي د ښځينه شاعرانو له جملې حنيفې زاهد ترور خورا مهمه ونډه لري او حنيفه زاهد د دې لړۍ مهمه غړې ده. په تېر شل کلن انقلاب کي زاهدې ترور هغسي حماسي نظمونه او اشعار وليکل چي ډېری نارينه شاعران د هغه ډول شعرونو له ليکلو عاجز و، د هغې شعرونه د خالق د قدرت، ښکلا، انساني احساساتو او حماسي، دا انعکاس ښه مثالونه دي.

موږ يې يو حمديه غزل د تشريح له پاره انتخاب کړې، هيله ده چي ادبي تنده مو پرې ماته سي.

لومړی بيت:

که سيوري دي که ستوري غوړېدلي پر هر لوري
انځور دی ستا د سترګو چي هم سپيني دي هم توري

په دې بيت کي شاعري د کائناتو هر اړخ ته اشاره کړې چي هر څه د خالق د ښکلا انعکاس دی. سيوري او ستوري دواړه د متضادو مفاهمو استازيتوب کوي (روښنايي او تياره)، خو دواړه د الله تعالی د قدرت نښي دي. د "سپينو او تورو ترکيب، چي مراد بيا ترې شپه او ورځ کېدلای سي، د ښکلا او جلال يو ځانګړی امتزاج ښکاره کوي.

دوهم بيت:

که غرونه دي که ګاري که رودونه که هواري
هر يو د پيغمبر دی معجزې يې نوري نوري

دا بيت د طبيعت د هر عنصر د الهي معجزو نښه ګڼي. غرونه، سيندونه او دښتي د خدای د قدرت بېلابېلي نښې دي، لکه څنګه چي هر پيغمبر ځانګړي معجزې درلودې، همدا راز طبيعت هم د خدای د قدرتونو معجزې دي.

درېيم بيت:

که ځان دی که جهان دی په کښې کښلي ستاسي شان دی
څوک وايي آيتونه څوک په سترګو ورته ګوري

په دې بيت کي شاعره وايي، که انسان دی يا ټوله نړۍ، هر څه د خالق د عظمت څرګندونه کوي. ځيني خلک يې د قرآن د آيتونو له لاري پېژني او ځيني يې د طبيعت له ښکلا او نښو الهي قدرت درک کولای سي.

څلورم بيت:

ستا لويي ارادې د کائناتو زولنې دي
را ګير دي په تقدير دي زورور دي که کمزوري

دلته شاعره وايي، د خالق اراده د ټول کائنات د نظم زولنه ده. ټول مخلوقات، که قوي وي يا کمزوري، د خدای د تقدير تابع دي او له هغه خلاصون نسته.

پنځم بيت:

عالم يې، هم خبير يې، په ښکاره هم په ضمير يې
منونکی که منکر دی رحمتونه دي پرې اوري

په دې بيت کي د خالق علميت او خبرداري بيان سوی. خدای پاک د ټولو ظاهري او باطني حالتونو څخه خبر دی. که يو څوک ايمان لري او يا نه، د خدای رحمت پر ټولو خپور دی، ځکه هغه رحمن او رحيم ذات دی.

شپږم بيت:

چي لوړ تر کهکشان سي تخيل مي لا حيران سي
ټول ځان مي يوه ذره سي د ذرو په منځ کي ښوري

په دې بيت کي شاعره وايي، د خالق د عظمت په اړه فکر کول، دومره ستونزمن دي چي کله تخيل تر کهکشانونو لوړ سي، بيا هم حيران پاته سي. انسان دومره کوچنی دی چي د ذرو په منځ کي يوه ذره ګڼل کېږي، له لومړۍ ذرې دنيا او باقي ذرو د مځکي موجودات مراد دي.

اووم بيت:

چي ستا څخه منکر سي دوو جهانو کي په وير سي
وجدان يې مرور سي ورته وايي سپکي سپوري

دا بيت خبرداري ورکوي چي څوک د خالق څخه منکر سي، هغه به په دې دنيا او آخرت کي په سختو کړاوونو کي اخته سي. وجدان به يې ناآرام او خپل وجدان به ملامتيا پر وايي.

اتم بيت:

جمال دی که جلال دی يو په تا کي يې کمال دی
و موږ ته دي ښوولي دي زموږ تر پوهې پوري

په دې بيت کي د خالق دواړه صفات، جمال (ښکلا) او جلال (عظمت) ستايل سوي. دا صفتونه دومره لوړ دي چي انسان يې يوازي تر خپلي پوهې پوري درک کولای سي.

نهم بيت:

چي ستا سره ښائېږي زموږ وس نه ور رسېږي
"زاهد" هسي ګډ–وډ سره پېيلي دي څو توري

په وروستي بيت يا مقطع کي شاعره اعتراف کوي چي د خالق د ستايلو وس نه لري او د هغه د کمال بيانولو توان نه لري. خپلي شاعرۍ ته ګوري او وايي چي دا يوازي ګډ–وډ توري دي چي د هغه د عظمت بيانولو وړتيا نه لري.

دا غزل د حنيفه زاهد د ژور فکر، روحاني احساساتو او معنوي ښکلا ښکاره بېلګه ده. په دې غزل کي شاعري د خالق لامحدود قدرت، ښکلا او جلال ته اشاره کړې او د طبيعت هر اړخ يې د خالق د عظمت نښه بللې ده. دا غزل نه يوازي آدبي ښکلا لري، بلکي ژور عرفاني او فلسفي مفاهيم هم له ځانه سره لري.

شعر او آدب

# د طلوع زريني وړانګي

## د غزې د فتحې په وياړ!!

انجينر محمد اسلم اسلم

غزه آزاده سوه خوښي په کار ده
ملګرو سمه خوشحالي په کار ده

ترڅو چي ټوله نړۍ فتحه نه وي
تر هغو پاک رب ته زاري په کار ده

تش په نامه مسلم چارواکو لره
نن ښه پرېمانه پښېماني په کار ده

د غلامۍ ژوند د کافروي بايد
مؤمن ته هر وخت آزادي په کار ده

باطل به تل سر په ګونډو وي اشنا
مبارزه لېږه صحي په کار ده

د حماسې وخت کي "اسلمه!" ګوره
ناره يې تکبير او شاعري په کار ده

## غزل

نوراحمد "قرآن مل"

ستا له عرش معلی دي رحمتونه
را اورېږي هر صبا دي رحمتونه

در ته خم دي منارونه لوړ سرونه
ستا په ذکر په ندا دي رحمتونه

د مينو شبستان دي بوخت په ذکر
د رڼا هره ځلا دي رحمتونه

سوال دي نه سي ابتدا و انتها ته
ابتدا بې ابتدا دي رحمتونه

د بد رنګو متضاد صفت ته خاندي
د ګلرخو په ښکلا دي رحمتونه

تور لونګ دي د خوشبو پر لمن راج کړي
سپين نرګس دي په ژړا دي رحمتونه

برندي سترګي د ساحل پر موجو ښخي
په څپو د هر دريا دي رحمتونه

وچه مځکه کائنات او سياري دي
"قرآن مل" ته په صدا دي رحمتونه

## غزل

احمد خان "ارمان"

قلم قلم مي سو زړګی له درده
لېونی کېږم لېونی له درده

وطنه زما خندا خوښي مه ګڼه
وطنه زه سومه مسکی له درده

ستا ځورېدلی حال چي وګورمه
پر ملا نړی سمه نړی له درده

خدای خبر تا باندي به څه تېرېږي
خبر دي نه سو هيڅ سړی له درده

که زما بې وسه په وس وای هيواده!
آګاه به نه وای ستا مريی له درده

ستا بچي وژني په يوه او بل نوم
اورم په غرو کي دي زګېروی له درده

خدايه! نور خلاص کړي زما ملت له غمو
ملت مي زر ځايه سوری له درده

زه "احمد" تل ورته دعاوي کوم
زه يادوم يې هر ګړی له درده

Tolo E Afghan Journal

طلوع‌افغان مدیریت له ټاکلي لیکنیز معیار سره سم، دلیکنو په اصلاح کې د لاسوهنې حق لري.

ګرانو لوستونکو! په ډېر احترام هیله کېږي، چې دا سپېڅلې پاڼې بې ځایه و نه غورځوئ!

## د ګډون کوونکو له پاره خبرتیا!

د طلوع افغان تاریخي خپرونه چې د هیواد په مطبوعاتي تاریخ کې ځانګړی ځای لري. که غواړئ چې د لمریز کال په آخرکي د طلوع افغان تاریخي ورځپاڼې یو بشپړ کلکسیون ولرئ، نو په طلوع افغان ورځپاڼه کې ګډون وکړئ.

د ګـډون کلنی بیـه ۵۰۰- پنځـه سـوه افغـانۍ، زده کوونکـو او محصلینو تـه د تصدیق پـه وړانـدې کولـو سـره نیمـه بیـه ټاکل سوې ده. اداره

مســـئول مـــدیر: ـــــــ بـــریـــالـــی "فیــضي"

د تصـحیح مسـئـــول: ـــــــ حاجي عبدالله "ذاکري"

کمـــپوز او ډیـــــزاین: ـــــــ نصیر احمـد "صــابر"

د مــــــدیریت شمېره: ـــــــ ۰۷۰۵۶۰۸۶۷۳

د توزیع مدیریت شمېره: ـــــــ ۰۷۰۰۴۹۱۴۳۶

پتـــه: ـــــــ علامه حبیبي واټ –اطلاعات او فرهنګ ریاست

د برېښنالیک پته: ـــــــ Afghan.tolo@yahoo.com

Founded in 1921 ISSue: 64 Established in 1300 Hijri


# اعلانونه او خبرتیاوي

## قرارداد کوي

د سپین بولدک ښاروالي غواړي چې د ښاروالۍ مربوط، د لاس پلور د اجارې قرارداد د یو کال له پاره په اجاره ورکړي. ټول هغه داوطلبان چې د دې اجارې قرارداد د سرته رسولو وړتیا ولري او پر شرایطو برابر وي، کولای سي چې خپل غوښتنلیکونه د ۱۴۰۳ ل کال د مرغومي میاشتي د پنځلسمي نېټې څخه بیا د ۱۴۰۳ ل کال د سلواغې میاشتي تر اتمي نېټې د دوشنبې تر ورځي پوري، سپین بولدک ښاروالۍ ته وسپاري او داوطلبي د ۱۴۰۳ ل کال د سلواغې میاشتي پر نهمه نېټه، د سه شنبې په ورځ، د سهار پر لس بجې د تعین سوي هیئت په حضور کي، د سپین بولدک ولسوالۍ ښاروالۍ ریاست، د تدارکاتو په مدیریت کي صورت نیسي.

## په اجاره یې ورکوي

د سپین بولدک ښاروالي غواړي چې د بولدک ولسوالۍ اشتهاري اعلانونو بورډونه د یو کال له پاره په اجاره ورکړي. ټول هغه داوطلبان چې د دې اجارې قرارداد د سرته رسولو وړتیا ولري او پر شرایطو برابر وي، کولای سي چې خپل غوښتنلیکونه د ۱۴۰۳ ل کال د مرغومي میاشتي د پنځلسمي نېټې څخه بیا د ۱۴۰۳ ل کال د سلواغې میاشتي تر اتمي نېټې د دوشنبې تر ورځي پوري، سپین بولدک ولسوالۍ ښاروالۍ ته وسپاري او داوطلبي د ۱۴۰۳ ل کال د سلواغې میاشتي پر نهمه نېټه، د سه شنبې په ورځ، د سهار پر لس بجې د تعین سوي هیئت په حضور کي، د سپین بولدک ولسوالۍ ښاروالۍ ریاست، د تدارکاتو په مدیریت کي صورت نیسي.

## په قرارداد یې ورکوي

د ارغنداب ښاروالي غواړي چي خپل ملکیت د سرکاري باغ د حیواناتو ګنج او د بابا صاحب رحمة الله علیه زیارت پارکینګ د داوطلبۍ په ذریعه د یو کال له پاره په قرارداد ورکړي. هرڅوک چي یې غوښتونکي وي، خپل غوښتنلیکونه دي د روان ۱۴۰۳ ل کال د سلواغې میاشتي د اولي نېټې څخه بیا د همدې میاشتي تر یو ویشتمي نېټې پوري، د ارغنداب ښاروالۍ ته وسپاري، شرطپانه کتلای سي، تضمین نغداً اخیستل کېږي او د داوطلۍ مجلس د ۱۴۰۳ ل کال د سلواغې میاشتي پر دوه ویشتمه نېټه، د دوشنبې په ورځ، د سهار پر لس بجې په ارغنداب ښاروالۍ کي تر سره کېږي.

## اعتبار نه لري

سرېن دیزاین او ساختماني شرکت د (D-04-287) شمېرې جواز درلودونکی چې رئیس یې محمد سورګل د محمد غوث زوی او مرستیال یې محمد ناصر د محمد غوث زوی دی، ورک سوی، د اعلان تر نشر وروسته د اعتبار وړ نه دی.

## د ورکي اعلان

څه وخت وړاندې د عینو مبني د ملکیت یو سند چې د حاجي عبیدالله عثماني د عبدالله خان بارکزي د زوی په نامه دی، د ملکیت نمبرونه یې (241-235)، موقعیت یې (E1-49/E1-48) او د فایل نمبرونه یې (2-1041/1-1041) دي، ورک سوي دي. هر چا که پیداکړی وي، د افکو کمپنۍ د فروشاتو دفتر ته دې ور وړي او یا دې د ټیلیفون په دې شمېرو تماس ونیسي:

0700305088 -0708600151

د پراختیايي بودجې څخه ورکول کېږي.

( ۱ ) مخ پاته: **په تخته پل ولسوالۍ...**

میاشت کې بشپړي او ګټې اخیستني ته به وسپارل سي.

پر یاده پروژه باندې ۸۰۰ زره افغانۍ لګښت راځي، چې د کرهنې، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست د انکشافي بودجې څخه ورکول کېږي.

( ۱ ) مخ پاته: **د مراجعینو د اسانتیا...**

د احصائیې او معلوماتو ملي اداري مراجعینو ته د لا زیاتو اسانتیاوو د رامنځته کولو په موخه له میوند بانک سره هوکړه لیک لاسلیک کړی، چې له مخې به یې میوند بانک مسئولیت لري، چې هیوادوالو ته د اسانتیاوو او د برېښنايي تذکرو، زیږون کارټ او د دې اداري د نورو خدمتونو د عوایدو د راټولولو په موخه، په بشپړي همږغۍ سره په ټول هیواد کې خپلې څانګې پراخې کړي.

( ۱ ) مخ پاته: **د درو کورنیو ترمنځ:...**

بل ته د وررور ګلوۍ لاسونه ورکړئ او زیاته یې کړه، د افغانستان اسلامي امارت په راتګ سره ګڼې لویې او کوچنۍ دښمنۍ ختمې سوي او په دوستۍ بدلي سوي، چې د علماء کرامو او مخور سپین‌ږیرو په همکارۍ به دغه لړۍ روانه وي.

( ۱ ) مخ پاته: **زرونو څارویو ته د...**

د مالدارانو ملاتړ کول، د مالدارۍ سکتور ته پراختیا ورکول او د څارویو په محصولاتو کې د پام وړ زیاتوالی راوستل دي.

د یادوني وړ ده چې یوه اوونۍ وړاندې هم د کندهار ولایت په پنجوایي او ارغسان ولسوالیو کې ۱۳ زره کوچنیو څارویو ته واکسین تطبیق سوی و.

## سوونه ګرامه نشه یي توکي نیول سوي دي




د کندهار د امنیې قوماندانۍ ویاند مولوي اسد الله جمشید ویلي، په تېره اوونۍ کې ۲۹۵ ګرامه ښیښه، ۱۳ ګرامه هېروئین، ۱۸۰ ملي لېټره الکولي مشروبات او درې سیټه موبایلونه نیول سوي او په تړاو یې دوه تنه شکمن کسان نیول سوي او اړوندو ارګانونو ته ور پېژندل سوي دي.

د هغه په خبره، د کندهار ښار له مختلفو ساحو څخه یې ۸۸ تنه په نشه یي توکو روږد کسان راټول کړي او اړوندو روغتیایي ارګانونو ته یې معرفي کړي دي.

د بل خبر له مخي د کندهار امنیې قوماندانۍ ویاند مولوي اسد الله جمشید ویلي، د شپږمي امنیتي حوزې ځواکونو یو تن د یو بوتل الکولي مشروباتو او یوه اندازه نشه یي توکو سره لاس په لاس نیولی دی.

د جمشید په قول، له یاد کس سره یې یو بوتل الکولي مشروبات (شراب)، ۲۰ ګرامه ښیښه او ۱۵ ګرامه هېروئین نیولي دي.

نیول سوی تن تر یولړ څېړنو وروسته د امنیې قوماندانۍ د نشه یي توکو په وړاندې د مبارزې مدیریت ته وسپارل سو.

## غیبت

ژباړه: سمیع الله دراني

غیبت هغه بد عمل دی، چې زموږ په ټولنه کې خپور سوی او اوس یې بندېدل مشکل کار دی.

غیبت دې ته ویل کېږي، چې یو کس د بل ملګري په غیر موجودیت کې د هغه بد عمل بیان کړي، یا داسې خبره وکړي، چې هغه ملګری که په دې خبره خبر سو، بده یې ګڼي.

په دین کې یې هم منع راغلې ده، بد یې بللی دی.

الله تعالی په قرآنکریم کې وایي:

غیبت کول داسې دي لکه د مړه ورور غوښې خوړل او نبي صلی الله علیه وسلم وایي، چې غیبت تر زنا هم سخته ګناه لري.

متاسفانه دغه عمل اوس عوام او خواص کوي.

هر مجلس پر غیبت ګرم وي. هر درې نفره، چې سره کښېني، غیبت را واخلي.

ښځینه ذات خو ګسه په غیبت کولو کې مشهوره دئ.

که غواړئ، چې له غیبت څخه ځانونه خلاص کړئ، نو تجسس او پلټنه مه کوئ، چې پلټنه پرې ښودل سي، بیا د غیبت موقع نه پیدا کېږي. او ښه شخصیت والا خلک غیبت نه کوي، ځکه د حضرت علي رض په وینا غیبت د کمزورۍ سرې آخري زور دئ.

( ۱ ) مخ پاته: **د افغانستان او چین...**

امارت د ملاتړ دریځ ته دوام ورکړي.

سیاسي معین ډاډ ورکړ، چې اسلامي امارت د اقتصاد محوره سیاست له مخې له نړۍ په ځانګړې توګه، سیمه ییزو هیوادونو سره ښې اړیکې غواړي او د چین په ګډون به د افغانستان له خاوري بل هیواد ته ګواښ پېښ نه سي.

په ورته وخت کې د افغانستان له پاره د چین سفیر ژاوشینګ په یاده غونډه کې ویلي، چین او افغانستان د تاریخ په اوږدو کې بې له دې چې د وخت شرایط په نظر کې ونیسي، ښې اړیکې پاللې او چین به له افغانستان سره د دوستۍ سیاست ته دوام ورکړي.

هغه ډاډ ورکړ، چین په افغانستان کې د ثبات ملاتړ کوي، د دې هیواد ارضي تمامیت او استقلال ته په درنه سترګه ګوري، په کورنیو چارو کې لاسوهنه نه کوي.

د چین سفیر له اسلامي امارت سره ښو اړیکو ته په اشارې ویلي، په تېرو درو کلونو کې د اسلامي امارت ۱۲ لوړ پوړي پلاوي چین ته دعوت سوي دي.

ژاوشینګ یووار بیا له امریکا غوښتنه وکړه، چې د افغانستان کنګل سوي پیسې آزادې کړي.

د یادوني وړ ده، چې په دې غونډه کې د افغان او چینایي ډیپلوماتانو ترڅنګ، یو شمېر سوداګرو، د پوهنتونونو استادانو او مسئولینو هم ګډون کړی و.

( ۱ ) مخ پاته: **د میلیونونو افغانیو...**

په یاده پروژه کې ۱۳۰ متره استنادي دېوال، ۴۲۵ متره کانال او ۱۲۰ متره کاریز شامل دي، چې په اساسي او معیاري ډول کانکرېټ کېږي.

پر یاده پروژه ۵ میلیونه، ۹۳۸ زره، ۸۴۷ افغانۍ لګښت راځي، چې د ملګرو ملتونو

## ټولنیزې رسنۍ

**احمد ظاهر "رشال":**

د سیاه دانې د خوړلو په اړه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

تاسو د دې توري دانې څخه کار واخلئ، ځکه چې په دې کې د هر مرض له پاره شفاء ده، پرته له مرګه.

یادونه: په آونګ کې یې میده کړئ او د سهار له خوا یوه د چایو کاچوغه له شېر ګرمه اوبو سره خورئ او همدارنګه یې و خوړو ته هم ور اچوئ.

**Shah:**

د بیا شروع کېدو څخه مه بېرېږه، دا ځل یې ته د صفر څخه نه، بلکې د تجربې څخه شروع کوې!"

**محمد ایوب "محمدي":**

د رب نیول ډېر سخت دي، کله چې د رب العالمین جل جلاله قهر نازل سي، بیا نه وسایل کار کوي، نه انساني ځواک او نه هم مادي قوتونه!

**Fazal Haq Hadi:**

خوبونه، خواهشات او ملګري چې هر څومره کم وي، هغومره به راحت ئې!

**Jan Mohammad Salih:**

زده کړه د ژوند اساسي برخه ده!

**عبدالواسع "سمسور":**

تل دا خبره په ذهن کې لره، چې الله تعالی بې هدفه او زما په تاوان درد نه را باندې راولي.

**Ahmad Shah Noori:**

هغه لاسونه هیڅکله مه هېروه چا چې ته یو لوړ مقام ته رسولی ئې!

**Nisar Samad Wasifi:**

د اخلاقو سترتیا؛

اخلاق ساختماني مواد دي چې په ټولنه کې د اړیکو پلونه جوړوي!

**Farhad Dawari:**

ښه ولوبېږه؛ چې خلک دې په لوړ قیمت رانیسي!

**Amin Stanikzai:**

د مارکېټ پېژندنه داده، چې روژه را روانه ده، په روژه کې کاروونکي توکي او محصولات سر له اوسه چمتو کړې او د ارائيې له پاره یې تیار له نورو ځایونو راوړې.

لکه: خرما، شات، ماچې، مکروني، اچار، ملايي، شیدې او داسي نور.

انحصار، احتکار او د نرخ د لوړېدو له پاره د توکو ساتل منع دي.

**aqib Ahmad Noori:**

ارواپوهنه وایي: فکري ثبات مو وجود صحتمند او روغ ساتي او برعکس بخالت مو وجود ته دونه ضرر رسوي، لکه د سرطان ناروغي. (ارواپوهنه)

**Samiullah Sahil:**

دا جمله مه هېروئ!

«هر څه په خپل وخت کې د هغه چا له پاره رامنځته کېږي چې د صبر هنر زده کړه ولري.» نوآرام اوسه! وګوره، واوره، تېر سه، جدي یې مه نیسه او په یاد ولره چې کله – کله صبر کول، خپله یو ډول هڅه ده!